# رزم و بزم

( یوولسم شعري دوتر)

ویناوال :پوهاند دوکتور مجاور احمد زیار

خوړه لوړي

پښتیا نا ته

له خوړه لوړي پلر نی میني سره

غبرګولی ۱۳۷۲



پرلیکه کوونکی سمسور حبیبي

# یادښت:

دادی، د اځل د پښتو شعر د هار و بهارمینه والو ته د استاد زیار د جیبي لړۍ ((رزم و بزم)) ټولګه پر لیکه کوو. استاد په دې تړاو چې له نورو ټولګو سره د دغې لړۍ توپیر په څه کې نغښتی، وایي: (( د غه واړه دوترونه د نورو هغو پرخلاف وړې وړې شعري ټوټې راخلي، که هغه قافیوالې دي، ازادې، سپینې او که ناپېیلې(منثورې)، خو په هره توګه، هم هنر دی هم طنزوانتقاد، یا په نورو ټکو هم خوند دی هم ژوند. ما هڅه کړې، د اروپایي شعري میناتورونو غوندې خپلو مینه والو او بیا ځوان پښت ته داسې یوڅه وړاندې کړم چې یو یوخوایې ښکلاییز ښوب (ذوق) ورځړوب کړي او بلخوا یې ژبنۍ او شعري-ادبي وړتیا او استعداد ور وروزي، او بیا پکې داسې پیغام راونغاړم چې اګاهانه یا نیم اګاهانه یې د نوي پرمختللي انساني ژوند سیالۍ ته را وبولي...)).

داهم تاسې او دا شعري ټوټې او انځورونه:





**سپېڅلی نوم**

چې شروع کړمه هــو الله او احـــد راځـــي پر ژبه،

یوېې بوله، که صنم او یـــا صمـــد راځي پـــر ژبه...

د اخلاص سوره چې خلاصه په اخلاص کړمه تر پایه ،

همغه سپېڅلی نـــوم مـــې رد په رد راځي پر ژبه !

وری ۱۳۳۷

## امتحان

ستا نشې ملالې سترګې وې خوب وړې،

زه دې غلی نګران د پټې مینې...

ته د خپل پېغلوټي حسن خیالولې،

مادې واخېست امتحان د پټې مینې !

رابعه بلخي لېسه۱۳۳۹/۹/۱۴

## ستا غم

څنګه هېر به شي له ما د سترګو توره ،

چې انځور دې د یادونو را سره دی !

په دې ورانه غملړلې دنیا ګۍ کې

بل غم څه کړم چې ستا غم له ما سره دی !

۱/۱۳۳۹/۱۱

## دبنده ګناهګار

خدایه زه چې د ښمنانو ته هم ګل وم،

دا په زړه کې د دوستانو ولې خار شوم...

که وای تاته ګناهګار رحمت دې ډېر وو ،

ګرانه دا چې ستا بنده ته ګنهګار شوم !

۲۹/۲/۱۳۴۱

## د مینې ډالۍ

د منت لويې مې هېڅ شوې تر پامه

را په برخه چې په مينه کې لويي شوه

چې پر مخ مې اوبه وينې ګډې ځاځي،

را ډاله يې هم آبرو هم سرخرويي شوه !

۱۳۴۱/۵/۱۸

## ډالرو جلالر

څومره لوړ چې په سرکار کې جلالر دی،

هومره لوړ پر افغانيو هم ډالر دی ...

د دې خوار ملت پر حال ژړا په کار ده،

چې يې څه پر داړه مارو باندې سر دی !

د ۱۳۵۵کال له څلوريزو څخه

## افغا ن پلار

زمانې شي ډېرې تېرې ،څو پيدا شي ،

ستا په شانې لوی اتل پر دا ديار...

پر نامه يې شي ښايسته ملي تاريخ مو ،

نو يې بولو بيا نيکه ، بابا ، يا پلار ،

که ميرويس مو شو ( نيکه ) احمد (بابا ) ،

ږدو پر تا ( ... ) ستر نوم د افغان پلار !

۷/۱۳/۱۳۶٦

کله چې نصرالله حافظ د حمزه شينواري د اتيايمې کاليزې په علمي - ادبي سېمينار کې خپل ((نظم)) اوراوه ، صديق کاوون پرې يوه طنزيه سندربوله پيل کړه او په پای کې پرې ما څو کړۍ نورې هم سرباري کړې:

**کاوون** . حافظه مه کوه سرې خبرې

اوږدې اوږدې او پرپرې خبرې

**زيار** . په هر يو بيت مې د زړه ولې ربېږي

ما ته شوې ستا لکه چړې خبرې

**دوست** . حافظه دا دخانۍ دود دې پرېږده

په لويه خوله وړې وړې خبرې

**کاوون**. راته ښکارېږي د خبرو وږی

پر خوله دې نه راځي مړې خبرې

**زيار** . ورځه ورځه چېرې بنګړي خرڅوه

څه د شاعر په نوم څېړې خبرې

**دوست**. دزاړه فکر پر دې نوي عصر

له خونده ووتې زړې خبرې

**کاوون**. چېرې حمزه دې هم پر خوب ليدلی

لـــه خپلې خبټې نه راوړې خبرې ؟

**زیار**. راپـــاریـدلې دې دخولې بو اسیر

څـــه کرغیـــړنې راته کړې خبرې

راشه نور پر برده بس د خدای لپاره

د پنـــدانـــې او کونجاړې خبرې

هسې د شعر په نوم غونداري ولې

لـــــکه کرکنډې را رغړې خبرې

ښکاري مچانو ته دې زړه شوی دی

پـــــه شان د غنې چې غړې خبرې

چې پر محفل دو مره ترخې لګیږي

لکه په زهرو کې لړې خبرې

حافظه ! زوړ شوې او شاعرنه شولې

تـــش په قافیه ردیف تړې خبرې

خوله دې شه شوله ! نور په مرګ راتوله ،

راتـــه کـوې به څو دا مړې خبرې !

## **ستا غیږ** ( **ازاد** )

کله چې زه ستا غیږې ته درشمه،

نیسي په زړو رنګین خیالونه مې

ځای د سترګلینونو په ککیو کې !

## ستاغیږ ( سپین)

کله چې ستا غېږې ته درشم

په زړګونو زړګونو خیالونه مې

په سترګلینونو کې ځای نیسي !

الماں، ۱۹۸۸/۷/۲۳

## شر م که ګنا ه

که نا پوهي بیګناهي وای،

نو ولې به،

هغه بې شرم بلل کېده

چې په شرم نه پوهېږي ! !؟

الماں، ۱۹۸۸/۷/۲۸

## شرم

د چاچې شرم زده،

بې شرمه نه دی...

بې شرمه هغه دی ،

چې شرم یې نه زده !

## پول

پول پوهې ته پول کېدای شي

او پول نه !

کارل مارکس ښار ۱۹۸۸/۷/۲۸

## نولس-شل

شل نولس کول دومره ګران نه دي،

څه چې ګران دي...

هغه نولس شل کول دي !

مرخان(برلین) ۱۹۸۸/۷/۳۰

## د پانګې مرلب

پر رڼا ورځې تندرونه ووري،

څه ناورینونه، ناتارونه ووري ...

پاتې داپانګه کړې د دوی له مرګ هم،

چې پر بې پانګوبې مرګونه ووري !

ویمار، ۱۹۸۸/۸/۲

## مياشى او بوېخور

هغه د شپې غل دى

اودى دورځې...

خو،

تر هرڅه يې ګټه تکى دادى

چې دواړه کوربه مخکې له مخکې خبروي !!؟

ويمار، ۱۹۸۸/۸/۲

## غونډه او ګردمېز

داچې نړۍ غونډه او ګرده ده،

نو بيې.

د هرې ربړې لپاره

غونډه او ګردمېز جوړيږي...

او له همدغه کبله يې هم

هو اريدنه لاپسې ګرانېږي !!؟

ويمار ۱۹۸۸/۸/۴

## دوزخي ته

په نامه د زنګوهلې او ورستې توري درستې

تا را پرې کړې هډو پلې له دښمنیه...

د جنت تورزنې هیلې دوزخي کړې ،

یه د پانګې ارتجاع زنځیري سپیه !

۱۹۸۸/۸/۸

## نومونه

څوک په زوی ځان نوموي او څوک په پلار

څوک په کور کهول ،په قوم او په تبار،

څوک په غره و څوک په سیند ، سیمه، دیار،

څوک په دندې ، څوک په ځانګې ، کسب و کار...

خو چې ماته کوم نوم غوره پر جهان دی،

هغه یو یوازینی نوم د «انسان» دی !

ویمار ، ۱۹۸۸/۸/۱۱

## شته

هر څه چې دِ بر وي،

زهرو ګنډ بر وي ،

څه چې اند ېروي ،

خوند يې هم ډېر وي...

هومره بيخونده به دې ژوندون وي ،

څومره چې شته دې ترکچې تېر وي !

ويمار ۸۸/۸/۱۵

## اوربند

اوربند نه دی، که اوربند دی،

که اوربند دی، خو نیم بند دی...

هرڅه بند شي له اوربنده،

ډز بند نه دی او اوربند دی ؟

برلين ۸۸/۸/۲۵

له الماني ادب څخه:

## ژب ماتی

-۱-

هغه چې څه نه پوهېږي

او پوهېږي

چې څه نه پوهېږي،

تر هغه ډېر پوهېږي

چې څه نه پوهېږي

او نه پوهېږي

چې څه نه پوهېږي !

-۲-

هغه چې څه نه پوهېږي

او نه پوهېږي

چې څه نه پوهېږي ،

هغه ناپوه دی !

-۳-

هغه چې څه نه پوهېږي

او پوهېږي

چې څه نه پوهېږي

هغه بسیادی ،

پوه یې کړه !

-٤-

هغه چې یو څه پوهېږي

او نه پوهېږي

چې یو څه پوهېږي ،

( هغه ) ویده دی ،

راوينښ يې کړه !

-۵-

**هغه چې يو څه پوهېږي**

**او پوهېږي**

**چې يو څه پوهېږي**

**هغه پوه دی ،**

**ورپسې ولاړ شه !**

ويمار اګست ۱۹۸۸



## د مينې تړون

**مينه هغه پيوند دی**

**چې بېلا بېل نا همنوري سره**

**همنوري کوي !**

ويمار ۱۹۸۸

## تينلب هوډ

**له نري چاوده د تورې تيږې**

**شنيلي نوی سر را هسک کړی،**

ما ویل.په کوم ځواک وکړ دا کار دې ؟

ده ویل ، ټینګ هوډ ته غر دی خسړی !

ګویتی پارک ۱۹۸۸/۸/۲۲

## پلونه-دیوالونه

د بېلتانه د دیوالونو پر ځای ،

د پیوستون او دوستۍ پلونه جوړ کړئ !

د جنګ او زارو او کوټونو پر ځای ،

ښوونځي، کورونه ، روغتونونه جوړ کړئ !

د مسکو هوایي ډګر هوټل

۱۹۸۸/۸/۲۸

## کار

چې کار د انسان لپاره منځته راغلی دی

نه انسان د کار لپاره ،

خو دا هم هېرول په کار نه دي

چې بې له کاره به انسان هم نه وای !

مسکو هوایي ډګر

۱۹۸۸/۸/۲۸

## بې توپيري

چې مې په مرګ شي، بيه دوه ګرايه،

يو پيل خو يم که ، پيلسوف نه يم. . .

پر مړو درنښت څه د ژوندو نه وي ،

زه هم که مړ شوم، بيا به هرڅه يم !

وږی ٦٧

دبهادر اختاش د غبرګو لوڼو ۱۵ کلنې سيما او ۱۳ کلنې د يانا

**ويرنه** چې د ښوونځي په وربوی کې شهيدانې شوې :

که موږ يې له تاسې واخښستو ،

خو ،

ډاډه اوسئ ،

چې زموږ په وينو کرلې خاوره به

هېڅکله در څخه وانه خښستای شي !!؟

تله ١٣٦٧

## لږم ميندې

که واړه دي واړه ګرم ،

خو د ه آره يې له لويه

نه شي تش په لږ مانو ،

لړم میندې وژل بویه !

۹/۹/۱۳۶۷

## تا

تا مې په تبجنه سره بېدیا د نهیلیو کې
وچې شان چینې د ژوند له سره بیا را تاندې کړې ،
تا لکه باران مې د هستۍ زمولې نغمې ټولې
بیرته لکه وینې په رګونو کې بهاندې کړې !

۱۳۶۷/۹/۱۱

## درويز ګر

چې پیسې په دعا غواړي
او خپل ځان ته دعا نه کړي ؟
ښايي ، ښکاري ورته نغده .
د بنده ورکړه تر خدایه !!؟

## کوډ ګر

په رښتیا یې که په کوډو
تورې خاورې زر کولای

نو ، په مزد کې به يې ولې

لاس پيسو ته غځولای !!؟

۱۲/۱۳۶۷/۱۰

**غبا ن(ازاد)**

هغه چې د پيل غوندې غټ شوي دي ،

پيل غوندې يې سترګې وړې شوې دي...

نور يې چې واړه تر سترګونه راځي ،

دا يې ورته سترګې خړې شوې دي !

**غبا ن(سپين)**

هغه چې د پيل غوندې غټ شوي دي،

نو سترګې يې هم دپيل غوندې

وړې شوې دي...

او له همدې کبله يو ازې غټان ليدای شي

او واړه نه !!؟

۱۳۶۷/۱۲/۲۸

**د پېروتې ژوند(۱)**

هغه چې د بل پر اوږو ژوند کوي،

پېروتې ته ورته دی...

چې تر کوربه بو تې چورلي را چورلي
او په لړ مهال کې ورسره سم ، لا څه
چې زیاتره ترې له مخه له منځه ځي !

## د پېروتې ژوند(۲)

څوک چې د پېروتې غوندې
د بل پر اوږو ژوند کوي ،
نو د پېروتې غوندې به يې
ژوند هم لنډ تنګ وي !

۱۳۶۸/۲/۱



## د امېد تراني

ستا د پلونو د ښکالو له انګازې نه
په سلګو نو ترانې د امېد زېږي ،
سپين سپېځلي سهارونه د ژغورنې
ستا په تکو تورو سترګو کې غړېږي !

۱۳۶۸/۵/۲۰

## ګرمانه

که پرون مو نه مروړای تر ګونډو لاندې

ورته ولې به کېدلو پرګونډو نن

که پرون مو بوتان نه ور ماتولای

وو به ولې لکه بوت ته پر سجدو نن !

۱۳۶۸/۵/۲۱

## درې پړسوبه

درې پړسوبه نن سبا سره مله شوي ،

مله لا څه چې یو په بل کې دي کلک نغښتي ...

د ( پیسو ) او د ( څوکیو ) او د ( څېرو )،

ځکه درې سره په یوه لومه کې نښتي !

۱۳۶۸/۲/۱۲

## ژغور بیړۍ

چې د مړو خوسا اوبو پر اوږو بار شم ،

د اوبړیو په څېر نه یم څپڅپاند ...

تر ګلکڅ ورسوم چې ژغور بېړۍ مې ،

لکه سیند غوندې بهاند یم او څپاند !

۱۳۶۸/۹/۵

## ا نساني آیات

د الله (ج) آیات ټیکه د ( خمیني )

د ( رشدي ) آيات چې بولي شيطاني ،

درحمان شيطان آيات به نور څه ژاړو ،

ځئ چې وپلټو آيات اوس انساني !

ليندۍ ۱۳۸۲

## لورو څټ

تر دا منځ به څه توپير د سره او سپين کړو ،

موږه ټول يو د ريد يو له ټبره...

څو به څيرو په لاره يود بل نس او

ما توو په څټک يو د بل ککره ؟

ليندۍ ۱۳۶۸

## ښځه او نارينه

ښه دی، ښه دی

سم سمی، برابری له نارينه سره د ښځې ،

خو په ونه کې تش نه ،

هغه هم بيا په جګپوندو ،

ياد سر د جوړونې په سينګار !

۱۳۶۹/۱/۳

## ځانچاري

وي ولاړ په وروستۍ ليکه کې تر هر چا ،

چې خبره د جګړې او سر تيرۍ وي ...

وي ولاړ په لومړۍ ليکه کې تر هر چا ،

چې خبره د امتياز او د څوکۍ وي !

د غويي اوومه ۱۳۶۹

## ستر ګې او خنداوې

ستا د سترګو په هينداروکې مې ورځې ،

دي له مخې پاک سپېڅلي سهارونه...

او په باغ کې مې دا ستا د خندا ګانو ،

ترمې ترمې غوټۍ سپړي سره ګلونه !

ننګرهار، ۳۰-۲- ۶۹

## ګډون

پرې !

چې وينه مو شي مينه

او شي مينه مو هم وينه ...

سره وينه مو ده ګډه ،

ځئ ،

چې ګډه کړو هم مينه !

څومو هسې ګډون نه وي ،

ګډ زموږ به ژوند نه وي !

۱۳۶۹/۲/۳۰

## دسپېدو سلام

ستا د ښکالوو له وربښمو ځنې،

ګوتې د خيال غړي پيغام د سپېدو ...

د ستورو سترګو سترګکونه دې ، بيا

سبا ته استوي سلام د سپيدو !

۱۲/۱۳۶۹/۳

## دمينې برېښنا

ستا په غلچکيو سترګلينونو کې،

سره برېښنا د مينې غځونې کړي...

هسک پرشنه ورشو مې د سبا دهسک،

سپين مرغه د خيال بيا الوتنې کړي!

۱۳۶۹/۳/۱۲

## دمينې سبا

پلوشې ستا د ښايست له هسکه ځلې،

زما د مينې د سبا پر اننګيو...

د مشکينو تورو څڼو بوی دې نغښتی،

په شنو وربو کې د هیلو د سپرلیو !

۲۴/۱۳۶۹/۳

## پاداش

وزارت کې یې څه وکړل بې خیانته،

په پاداش کې یې چې ځي اوس سفارت ته !

ګوندې نور یې زړه وهلی افغانیو،

ملا تړي اوس د ډالرو تجارت ته !

۱۳۶۹/۴/۱

## بلځايي ښځه

وزارت و سفارت یې اجاره ول ،

ښځه نه وه، قباله وه د څوکیو...

اوس څه باک ، که یې قانون د لارې خنډ شو

اوبې برخې نور له هسې شان پوړیو...

چې لري بې کچه سره سپین، شتمني اوس ،

بلځایي سره به ګرځي هرځایي اوس !

۱۳۶۹/۴/۱۰

## لیوا ن

زما رخه نه راځي په دې خبره ،

د امتیاز چې تل څو کسه خاوندان دي...

خو په دې مې زړه اور اخلي په ګوګل کې ،

چې دوی ولې د ملت پرځان لېوان دي ؟

۱۹۲۹/۴/۱۲

## دپردیو خېښي

خورو لور یې وې ورکړې په دې موخه ،

چې (دوستي) کړي پر (خېښۍ) باندې بدله...

د څو ورځو تګ راتګ، مزې چړچې وي ،

خو ارمان چې تنسته ژر وشلېدله...

اوس که خاورې شوې پرخوله د (طفیلانو)،

«د غران همدومره ګوره وي» یارانو !

۲۸/۴/۱۹۲۹

## دمریيو مریي ته

ماله هغه یوه توره خپل ځان سپین کړ،

چې بللم دې مریي د (بادارانو)...

خو تا نه کړ دا غبرګ تور له ځانه لرې ،

دا چې پاتې یې مریی لاد (مرییانو) !

جلالکوټ ۲۴/۲/۱۹۲۹

## ازاد شعر

که څوک په رښتیا سره شعر د ازادۍ لپاره

پرکار اچول غواړي ،

باید لومړی پخپله شعر له قافیې باستیله را ازاد کړي !

وږی ۱۹۲۹

## غچلیږد

سرو مال تا کړه ورچور ،

د اوکې زما سرو مال...

د ښنه کړه تا میدان ته ،

سینه زما ورته ډال ...

که لاس دې پاک کړه پر ما

او ترې خپل ځان دې کړ بچ ،

خو دې پر یاد لره چې

تاریخ له تا اخلي غچ ...

اوسه آوخت ته پر ځار ،

چې واخلي ټول درنه وار !

تله ۱۹۲۹

## تلاشي

له سپاهي ځنې سپی جوړ شي،

چې شي کار يې تلاشي . . .

چې هر ځه تالا والا کړي ،

(( تلاشي )) کړي، (( تالاشي ))

نو پرده څه اعتماد دی ،

چې پخپله غل، که ساد دی !

۱۹۲۹/۷/۱۲

## بوې که چور؟

له زاړه بډيخور چا پوښتنه وکړه،

له پخوا څه توپير کړی ما موريت نن ؟

ويل ، زما پر وخت وې بډې او اوس چور دی...

خو افسوس ترې يم بې برخې زه بدبخت نن !

۱۹۲۹/۷/۱۳

## قاچاق

چې يې وکړل اختلاس وغلا او بډې ،

نو وهلي يې قاچاق لره اوس بډې...

ديپلومات پاسپورت يې هر چېرې پرده ده ،

پر رڼا ورځې وهي او ښان په بډې !

۱۹۶۹/۸/۱۵

## چپه کارونه

د هېواد په دې اړدوړ او نارامۍ کې

دي ځای ناستي د پښانو ، تر کاڼان . . .

له بريد ګيانو او پنډيانو ځنې جوړ شول،

ډير بې شمېره جنرالان او پانګو الان...

که اوس نه شو څوک جنرال او يا پانګوال،

وبه نه مومي پر ژوند بيا دا مجال !

۱۹۶۹/۹/۳۰

## پښوالی

شنه او مه میوه په ونه کې نه ښکاري،

چې پخه شي ، زیړه سره، ښکاري له ورایه ...

د انسان د بشپړ تیاده هم دا ننبه،

چې ښه پوخ شي ، شي او ځار له لرې ځایه !

۱۹۶۹/۱۰/۱۹

## لوړ او ځوړ

پردې لوړو منصبو باندې یې مه شه،

چې یې نن سبا له مرګه پاتې کېږي...

د ارهټ منګو ټې ګوره،

چې ډکېږي،

راچګېږي

او بیا تش شي پر مخ لوېږي...

کله لوړ و کله ځوړ،

دغه دود دی دد نیا :

و تُعِزُ مَن تَشأ ،

وَتُذِلُ مَن تَشَأ ج !

۲-۱۱- ۶۹

# دیني ویني

په رګو د پسرلي د دې چمن کې

کړي زما شهیدې ویني غځونې

د دې ګلو اننګي هسې سره نه دي

رنګ اخېستی یې له وینې ، زما دینې !

۱۹۲۹/۱۱/۴

# څلور وا کمنان

« دا وطن د خلکو دی، خلکیانو پکې ... وکړل ،

لږ امین تره کي او ډېر پکې کارمل وکړل » ...

اړوي هر څوکه پرې نجیبب خځلې خاورې اوس ،

نشته د ډډوزو یې هېڅ لار د کومې چارې اوس !

د پاسني شعر لومړی بیت دعمرمعلم دی، ننګرهار ۲۰/۱۱/۱۹۲۹

# شو ګیر

شبنم شوګیر کړه یوه شپه

د ګلغوټۍ د خولې خندا لپاره...

او ما داستا د خولې خندا په اسره

ټوله ځواني په شوګیرو تیره کړه !

## ګرد

کلونه وشول

چې ته تللې له ما ،

خوزه تر اوسه،

-لکه ګرد-

ستا د پښو ښکل په مينه

کاڼي او بوټي د بيديا ښکلوم !

نغلو ، ۱۳۷۰/۴/۲۵

## پښتو قرآن

دا چې کښلی پير روښان، خيرالبيان

چاويل نشته په پښتو ژبه قرآن ؟

( مثنوی مولوی معنوی/ هست قرآن در زبان پهلوي )

زمری۱۳۷۰

## ښکاري

خدايزده

څه تير شو د ښکاري په زړه کې،

چې وريې پرانيست د پنجرې،

د ښايسته ښکلو کناريانو پرمخ...

نه چې تر بند ، سوزو فرياد يې ورته،

وریته څه زیاته واره یې ښکاره شوه ؟

۱۳۷۰/۵/۲۸

## دلور اوبه

راشئ

په شنډو تورو وریځو د هسک،

زما د ژوند زېړو شیبو

د تبجن ذهن پر جلو هلې بیدیا

- د بیګناهو بهیدلو اوښکو وینو پر ځای -

نورې راتویې کړئ

د لور و پیرزوینې اوبه !

۱۳۷۰/۲/۲۰

## غوړېدلي پرهرونه

په رګ رګ کې د ناپایو اندیښنو د نن سبامې

تیر یادونه د ښایست د پسرلي ستا لا بهاند دي...

چې زمول بڼ ستا دزړې مینې له سره بیا سمسور کړي ،

دزړګي داغوړېدلي پرهروونه مې لا تاند دي !

۲۶-۶۰-۷ ل۰

## د دود و مود بلهارې ته

تاد پسولونو او ګانو په نامه

کړلې په لوی لاس اتکړۍ په لاسو

کړه غاړه کۍ دې جوړ غاړبند پر غاړه

او په غوږو کې دې کړۍ د بنده ګۍ کړې بندې...

۲

تادفیشن او نوی مود په نامه،

په لنډه تنګه لمن

او په جګپوندو بوټو ،

ولګاوه پر غبرګو پښو د ګرځېدنې بندیز...

۳

نو ، اوس ته ووایه

په زغرده راته

چې چا له تاده ازادی اخیستې ؟

که دې ازاد له زاړه دوده کړ ځان ،

بیرته په خوښه دې بندي له نوي موده کړ ځان !

۱۳۷۰/۹/۲۳

**غوټې**

کله چې پسرلنی نسیم ،

په یوه مچه

د غوټۍ له خولې د چوپتیا مهرمات کړ ،

نو د ګل غوندې وغوړېده...

او د وږمو په ژبه یې ،

په خندا خندا کې

د خپل زړه رازونه را وسپړل .

۱۳۶۹/۱۱/۱۹

## ستا تر وربوی

زه په لټون د خپلې مینې د برخلیک

ستا تر وربوی راغلی...

که رابنکاره کړې مینه وړې سترګې ،

درځنې ځم به نور پر خپله مخه !

۱۳۷۰/۱۱/۲۱

## اوړی او ژمی

ستا مینه،

- کټ مټ -

لکه لمر هسې ده

چې پلوشې یې

په ساړه ژمي کې

زما د خونې د کړکيو تر هېندارو پورې

نه رارسي،

خو په سره اوړي کې مې

له يو مخ پوست و هډو پلې

سوځوي...

ګوندې ،

په مينه کې دې دود همداسې ،

((له لرې مرم، له نژدې سوځمه چې))!

۱۳۷۱/۱/۱۱

## مَينا او توتي

دواړه د خبرو پېښې کولای شي ،

خو بيا هم ،

مينا مينا ده او توتي توتي !

درونټه ۱۳۷۱/۱/۲۱

ته يې زما په زړه کې

هغه تلپاتې مينه،

ته يې زما په ذهن کې

هغه زړه خاطره...

چې نه، ناخوالې د ژوند

او نه، د مړينې ناورين...

تا اخيستای شي له ما ،

يا هېروای شي له ما !

۲/۲/۱۳۷۱



## چپه پايله

دباطل- حق په جګړه کې

باطل حق و حق باطل شو....

چې اور- وينې يې اند –ژوند وو،

د نن مشرآ قاتل شو !

جلالکوټ - تورخم ۱۳۷۱/۲/۱۷

## د ګناه پېټی

څه چې توبې وې ، ما خو درستې کړلې ،

خوښه ده ستا چې مې ښښې او که نه ؟

دګناه بار پر اوږو تاته راغلم،

رانه دا پېټی سپکوې او که نه ؟

جلاکوټ–تورخم ۱۳۷۱/۲/۱۷

## ستر ګې

ستا مینه وړې ستر ګې،

غبر ګې چینې د نور دي...

چې پکې لامبي شپه او ورځ

زما د خیال د رنګینو ناوکۍ ،

زما د شعر د ښکلا ښاپیرۍ !

پیښور ۱۳۷۱/۳/۲۰

## اننګي

ستا سره بخن اننګي،

زما د مینې د بریا مخسوري...

چې مې د زړه ساړه سمخ

او تور تیاره زندان ته

د ژغور تلپاتې تودوخي

او رڼایي رابښي !

پېښور، ۲۰/۱۳۷۱/۳

## سينې

ستا د سينو ګلغوټۍ

دي اسماني صحيفې...

پکې چې نغښتې دي سورې د ښايست،

پکې چې نغښتې دي آيات د مينې !

۱۳۷۱/۲/۲۰

## شونډې

ستا پر سرو شونډو مې

پرتم د سور کو وينو نا څي...

او دا زما زيړو زبيښلو

ولولو لره د سترې مينې ،

د نوو نوو تکلونو ترانې اوروي !

پېښور ۱۳۷۱/۳/۲۰

## لاسونه

ستا مرمرين لاسونه

دوې اسماني پرښتې...

زما د اندو ژوند د ذهن پر اوږو تل نا ستې

او را ليکي زما د مينې برخليک.

پېښور ۱۳۷۱/۳/۲۰

**ورنونه**

ستا بلوري ورنونه

زما د سترو خوبولو هوسونو پالنګ ،

زما د ترو جلوهلو ارمانو د خړوبتیاوو بستر !

۱۳۷۱/۳/۲۰

**پلونه**

ستا ښایسته ښکلي پلونه

د ناز خرام انځورګر ،

زما د یون بدرګه...

او د لمر ښار لره زما د رسیدلو شعر !

پېښور ۱۳۷۱/۳/۲۰

**خولګۍ**

ستا د خوږې خوږې خولګۍ تصور

ماته د هغو شودو شهدو خوړلني رابښي

چې تل بهېږي د خدايي لورو پيرزو

په جنتي ويالو کې !

پېښور ۱۳۷۱/۳/۲۱

**د غم ګزمې**

په ګلبڼ کې ګونګسي د خوشبويۍ شول،

چې د باد په لاس تا زلفې وسپارلې !

ګوندې بیا د غم ګزمې ګرځي را ګرځي،

دا چې خواته زما راغلې غلې غلې...

کابل، ۱۳۷۱/۴/۷

## مینه وړې څپې

زه لکه تږی ساحل

په دې ارمان کې پاتې ،

چې به مې کله مینه وړې څپې

تبجنې شونډې ښکلوي په مینه !

کابل، ۱۳۷۱/۴/۹

## توري پردې

د تاریخ، ښکلا او مینې تور مخانو

ونغښتل تورو پردو کې سپین مخونه،

پر اوږو لېږدي د تورو وحشي وریځو

د شهیدو سپینو ورځو تابوتونه...

کابل۱۳۷۱/۴/۱۰

## د عمر کسات

سامې مه اخله، یه د مرګ پرښتې !

پرېږده ! همدومره لږه سا واخلمه...

چې د ټول عمر رنځ کړاو په نامه،

کسات له دې شومې دنیا واخلمه !

کابل ۱۳۷۱/۴/۱۴

## د مینې سهارونه

پر پاسته وربښمین پالنګ ستا د سینې وم

ستا د ګل بدن د عطرو په نشو کې

ډوب خوب وړی ،

له ما بنام تر سپیده چاوده...

تر څو ،

ستا د ګل مخ پر خو

مې رانجه د خوب له سترګو څنې پر بولل

او لمرینو پلوشو د سباوون ستا د ښکلا مې

پر مخ پرانېستل د مینې ښایسته ښکلي سهارونه !

باړه ګلی، ۱۹۹۲/۷/۱۷

## غېږ

زما د غېږ سپېره اغزنه للمه

دا ستا د ګل بدن د عطرو تږې...

که راخړوبه یې کړې ،

که راښیرازه یې کړې...

څومره به ښه وې ګلې ،

څومره به ښه وې ښکلې !

وانه، ۱-۸-۹۲

## سپا هي او خر

ګاډي چلوونکي ته

تر دې بله ستومانوونکې نشته

چې پر سم سړک باندې یې مخې ته

سپاهي یا خر

ځای پر ځای ښري ودریږي !

رزوب ، ۱۹۹۲/۸/۳

## پیدایښت

که دي اوبه له پیلبو نه پیدا ،

نو پیلبوده له اوبو نه پیدا ...

لکه له چرګې چې هګۍ ده پیدا ،

چرګه ده هم خپلې ابو نه پیدا !

اکوړی /۱۹۹۲/۸/۲۸

## نارينه او ښځه

ځومره چې نارينه په ښځې پورې اړوندې لري ،

هومره يې ښځه په نارينه پورې نه لري...

ځکه چې:

ښځه د نارينه هم مورده ،

هم مَينه،

او هم ماينه

پېښور ۱۹۹۲/۸/۳۱

## غميزه

څه ترخې ترخې شېبې د انتظار ستا ،

لکه زهر له ماښامه تر سهار څښنم...

بس دا زه او تور نانځړه د ښېلتانه دي ،

چې په جام کې يې د شپو هسې بار بار څښنم !

پېښور ۱۹۹۲/۹/۲۴

## دین و دولت

د پانګې ګټې، وې پکې نغښتې ،

ونخول یې ، لکه نا نځکه...

دین یې پلمه وو دولت لپاره ،

دولت یې وموند ، نور نو دین څه که !

ماهیپر ۱۳۷۱/۷/۱۴

## پرده

ډیرو ژوندیو ته،

تر مرګ بله ښه پرده نشته !

کابل، ۱۳۷۱/۷/۱۸

## شپه روڼې

راز د عشق لکه غوټۍ نه ساتم زړه کې،

ما پرانیستې لکه ګل شونډې هر چاته...

لکه پرخه چې په ګل پسې شوګیر کړي ،

توري شپې دې رڼوم د مخ سباته !

کابل، ۱۳۷۱/۷/۱۹

## اور و لوګی

دوا ړه توکه د ځانو ژنې د وسیلو

په دوو بیلا بیلو ډلو اړه لري،

او هغه دا چې:

لومړی سملاسي ده

او دویمه ځنډنه !

اکوړی، ۱۹۹۲/۱۰/۳۰

## ویاړ

لږ تر لږ خو د چا پښو ته اغزی نه شوم،

څه که ګل نه شوم د چا خیالي وربل ته. . .

که سوزنګ مې لکه شمه رڼا نه شوه ،

لکه سپند خو به لوګی شمه محفل ته !

اکوړی ، ۱۹۹۲/۱۱/۱

## مچواله

هغه څوک چې د مچ غوندې

پر هر پاک او نا پاک ورغوټه کېږي

او په هېڅ اړنه وي ،

نو هرومرو به د مچ غوندې

یاسر خوري...

او یا خو به دتللپاره منګولې مروړي !.

۱۹۹۲/۱۱/۱۱

## د راتللو شعر

راشه،

زما پر سپینه پاڼه د ترخه انتظار،

وکښنه د خپلې خوږې مینې د راتللو شعر...

ګوندې ،

زما د ژوندانه په دې تشتور دوترکې ،

ستا د وفا دا یو ښایسته ښکلی یادګار پاتې شي !

۱۹۹۲/۱۱/۱۱

## پوهان او پرښتې

که چېرې دویم ځلې

پر نړۍ را ژوندي شو ،

نو ،

هرومرو به ټول بې زده کړې

پوهان یو...

او بې عبادته پرښتې !

اکوړی، ۱۹۹۲/۱۱/۱۸

## تعصب و افراط

تعصب و افراط

په هر دین و آیین کې

له حق سره نا باندې دي...

که داسې نه وای،

نو ولې به

منصور پر دار ختلای،

او گا لیله پر انگار !!؟

ځنځیرکلا، ۱۹۹۲/۱۲/۲

## د باغ خوب

تا لا والا لوښلی باغ

- په منگنی کنگل وهلی شپه کې -

د پسرلي شنه و ښیراز رنگین خوبونه لیدل...

خو چې سهار

له درانه خوب شو راویښ

پوه شو د خپل لیدلي خوب په مانا،

او هغه دا چې

سپینو واورو یې تور سر سپین کړی !

فقیر کلی ۱۹۹۲/۱۲/۲

## مچ و میاشي

ازار ګټلي

لکه مچ و میاشي داسې دي ،

په دې ما نا چې:

چا د ازار لپاره ورځ تاکلې ،

او چا شپه !

ځنځیر کلا ۲/۱۹۹۲/۱۲



## نوم بد لون

په نوم بدلون به، نومیالی نه شي،

تر څو وا نه وړي ،له بد خصلته !

وایی. خر بیا هم، هماغه خر دی ،

که څه هم نوې ،کړې ورته کته !

متهه، ۱۹۹۲/۱۲/۴

## مخپټې مینه

په تش تیندک او سترګک دې مه شه ،

که ښکار د زړو کړې مخ را ښکاره کړه !

چې رڼا ورځ يې پر تا شپه کړې ،

له سر کښې خو ګربوان پاره کړه !

متهه، ۱۹۹۲/۱۲/۴

## د زړونو وا کمني

هغه يار به څه ديار مينې جوګه شي ،

چې ورتګ يې د رقيب په بدرګه شي...

وا کمني د زړونو غواړي سر ښندنه ،

چا ويل، په زرو زور ويا جرګه شي ؟

فقير کلی، ۱۹۹۲/۱۲/۵

## ازاد که بنده ؟

که پر خپله ازادۍ هر ځومره ويا ړو ،

که هر ځومره د دې لارې پتنګان يو...

خو دا باتې مو په دې دي هسې خوشې ،

چې د ګروهې له پلوه ( بنده ګان ) يو !

فقير کلی، ۱۹۹۲/۱۲/۲ (دايوبخان اخکزي له وراشو )

## د پيريو خوب

څه بې شانه اند ښښې شوې را چاپيرې ،

دا چې ځير شم ، نرۍ چيرې ده، مورې چيرې؟

د پيريو له درانه خوب ځوويښېږو ،

قافلې د ژوند په څومره وي لا تيرې !

فقير کلی ۱۹۹۲/۱۲/۸

**دشتمنو اسلام**

که هر مسلم ته دنيا دوزخ دی ،

او هر کافر ته لکه جنت دی...

نو د شتمنو اسلام به څه وي ،

له حده تير يې چې مال دولت دی ؟

فقيرکلی، ۱۹۹۲/۱۲/۸

**ملا ته**

ملا تا ته مې شراب ، کباب ښښلي ،

امر و نهی مې ستا واره دي منلي...

خو مه نغاړه په خاطر رانه د مينې ،

تورو نمرو کې تک سپين مخونه ښکلي !

فقير کلی ۱۹۹۲/۱۲/۸

**مسجدو مندر**

نوري زړې شوې د ملا او د بامبړ خبرې ،

د دين په نوم د ښه او بد او د پړ وړ خبرې !

د يوه خدای او يو خالق په نوم پرېږئ نورې ،

د کليسا ، دير ومسجد او د مندر خبرې !

فقیر کلی، ۱۹۹۲/۱۲/۸

## روستواله

څه کانه راباندې وشوه ذوالجلاله ،

پر شا ولاړو بیرته څوارلس سوه کاله !

چې ژوندی پر تورو ګورنډو سپارو ښځې ،

را په برخه دې کړه دومره روستواله ؟

فقیر کلی، ۱۹۹۲/۱۲/۸

## دشیخ تکفیر

شېخ پر مخ راغی، ډیر قهرژلی ،

ږیره بمبل او ، سر یې خرېیلی...

وېل یې بې تا نه ، بل کافر نشته

چې هم بیتل یې ، هم ږیر خرېیلی !

فقیر کلی، ۱۹۹۲/۱۲/۸

## ګواښ

چې کوي سوچ مې د ورکولو ،

د تاریخ، خاورې د نشتولو...

هغه مغزې دې د ماتولو ،

هغه ماغزه دې د بادولو !

فقیر کلی، ۱۹۹۲/۱۲/۱۰

## د مني پرخه

زه له تيارو تښتېدم ،

خو پر تيارو واوښتم...

لکه د مني پرخه ،

سم پر اغزو واوښتم !

فقير کلى، ۱۹۹۲/۱۲/۱۰

## د عطرونو باران

شي مين مين زړه مې ترمې ترمې هسې ،

چې دې پرې وورې د غوړچونو باران...

وروه مې پر دې زمولې غوټۍ ،

لږ د موسکاوو د عطرونو باران !

فقير کلى، ۱۹۹۲/۱۲/۱۰

## تله او راتله

کله چې تلې ،

د نهيليو چوپتيا

کړې غځونې پر اغزن بستر

د سترګو زما...

نو ،

راشه بيا !

چې درته وسپړم

دا ستا د بیا راتلو په هیله،

د خپل زړګي په وینو کښلي

څو رنګین د فتره !

فقیر کلی، ۱۹۹۲/۱۲/۱۰

## کېله

لکه دې اوښکه له لیمو پر ېوتی ،

جوړ په لمن کې د دښنو پرېوتی...

کنګل کنګل لکه د ژمي پرخه ،

پرځای د ګلو پر اغزو پرېوتی !

فقیر کلی، ۱۹۹۲/۱۲/۱۱

## توره تېښته

پر مخه راغلې ، مستې کوترې ،

شاته غوښنې ، مخ ته ډنګرې...

بازاري مینه، یې خرڅوله ،

په توره تېښته ،ځنې شوم لرې !

قصه خواني، ۱۹۹۲/۱۲/۱۱

## بیوارې تلوسې

په تبجنه سره بېديا کې

د ویرژلو شپېو

زه وم ستا د بیا راتلو ښکالو ته

غوږ پر اواز...

ګوندې مات کړې د راتللو پدل،

او زما د غو ببوارو تلوسو ته

د پای ټکی کېږدې !

فقیر کلی ۱۹۹۲/۱۲/۱۱

## پور ژلی مرغه

زه یم هماغه وزر ماتی مرغه

توپان ځپلی ،

یو پورژلی مرغه...

چې مې تر شا پرې ابښې

تا لا تر غیږ او ترمې ترمې

نږېدلې ځاله !

فقیر کلی، ۱۹۹۲/۱۲/۱۲

## لمر مخ

ما ستا د لمر مخ د لیدو په اسره ،

د ګومان تورې وریځې و خیرلې...

په الماسي تېرو شتيو د باور د برېښنا !

فقير کلی، ۱۹۹۲/۱۲/۱۲

## ناويلې نغمې

نه ژاړم تش خزان لوټلی چمن

له ځوانيمرګو شينيليو او غوټيو سره ،

زه تر هر څه د مخه ،

آغرېو نيولې مرۍ

د نغمه ګرو بلبلانو ژاړم...

نه چې تر تله يې همداسې پسې،

-د پسرلي په ارمان-

زمولې نغمې شي نا ويلې پاتې !

فقير کلی، ۱۹۹۲/۱۲/۱۲

## روغتون

روغتون خوځه ورکشاپ نه دی،

چې هر ناروغ ترې

روغ را ووځي !

ليډي ريډينګ روغتون ۱۹۹۲/۱۲/۱۹

## زما دين

ګرانې زما ستا ياري ګرانه ښکاري ،

چې لومړی شرط مسلماني ږدی پر ما . . .

زه خوبې مينی بل دين نه پيژنم ،

څه نوم يهود ونصراني ږدې پر ما !

بالاحصار ۱۹۹۲/۱۲/۲۲

## فشار

د هغې ټيټ و ، او زما لوا ړ و ،

نه په درمل شوه ، او نه په تاړو . . .

ما چې لږ ورکړ له ډيره لوره ،

په متې سم شو زموږ د دواړو !

شاهين ټاون ۱۹۹۲/۱۲/۲۹

## د لمر تر ښاره

ما لکه هسک ،

په خپلو ستورو او ښکو ورو ډله

تورتمه شپه تر سبا وونه پورې...

او په دې توګه مې کړه لنډه

اوږده لار ،

د لمر د ښار پر لورې !

ځنځير کلا ، ۱۹۹۳/۱/۷

## دعا

د نا خوالو وړاندې ځواک د يو پاڅون را ،

له دې هسې پر شا تګه، پر مخ يون را ...

مغولواله مو بيا ګوانبې پښتونواله،

سرواليې ته د ( خوشال ) غوندې پښتون را !

جاوېد مېنه، ۱۹۹۳-۱-۱۵

## هړتال

نن مې اشنا راځي د ښار پرچکر،

کوندې هړتال و کړي دا چوړې بوړې...

چې په دې ورانو او کچه ګلو کې ،

پر مخ ورباد نه کاندې خاورې دوړې !

جاوېد مېنه، ۱۹۹۳/۲/۱۲

## خپل نن و سبا

نه پنځوس، سل و ، دوه سوه کاله پر مخ ،

نه څوارلس سوه ، شپږزره کاله پرشا . . .

تباه برباد کړو ، هسې افراط و تفریط ،

ځئ چې راخپل مو ، کړو دا خپل نن و سبا !

پېښور، ۱۹۹۳/۳/۱

## روژتي شونډې

سمې مې چې شونډې در نژدې کړمه ،

سنا له روژه تي شونډو حیا راشي...

بیا چې دې رواشي دغه مې راته ،

کله به هغه اختر پر ما راشي !

جاوید مینه، ۱۹۹۳/۳/۹

## د یاد مرغلره

ته که ولاړې مې له سترګو ،

لکه اوښکه...

خو ،

ستا یاد به مې هغسې،

-لکه تانده مرغلره-

په سیپۍ د زړه کې

پاتې وي ترتله ! !؟

جاوید مینه۱۹۹۳/۳/۲۱

(**پای**)